# Kabul

*Monthly Journal*

*of*

*The DRA Academy*

*of Sciences*

**Center for Languages**

**and Literature**

**Pashto Tolana**

**Editor: Noor Mohammad Sahim.**

Vol — 56 No. 11—12

**Government Press**



# کابل

ژبنی او ادبی څېړنی

پس و رشاد د محترم با حسرتی کتاب
موضوعه را ... آوردم تشریف شد شکر


د ا. د. ج. د علومو اکاډمی

د ژبو او ادبیاتو مرکز

پښتو ټولنه


با حفظ شیار د میرزا احمد ایش و آن لحظه
تقدیم احساسی شاعر بالاشره رضیم تکر


پر له پسې گڼه: ۸۰۱-۸۰۲

۱۱-۱۲

۱۳۶۵

کتونکی پلاوه:
سلیمان لایق
پوهاند رشاد، سر څېړونکی روهی
څېړونکی محمد هاشم رحیمی

د لیکوال د مړینې په مناسبت          زرین انځور

# محمد امین خوګیانی

## لیکوال او ژور نالیست

د افغانستان د مخکښو ژور نالیستانو په کتار کې محمد امین خوګیانی هم د یادونې وړ ځای لري.ارواښاد محمد امین خوګیانی د هیوادرو پیژندلی شوی ښوونکی ،ژور نالیست ، قاضی او لیکوال و او د وطن د ژور نالیزم د پر مختګ له پاره یې دستاینې وړ هڅې کړې دي .

محمد امین خو ګیانی د خپل وخت د لوی عالم او روحانی شخصیت مولانا محمد اسرا ئیل زوی دی .(۱) د ۱۲۷۸ هـ ، ش کال د جدی

---

۱ـ عبدالحلیم اثر افغانی د«روحانی رابطه او روحا نی تړون» په نوم په خپل کتاب کې د محمدامین خوګیانی د پلار په باب لیکي : «حضرت مولانا ... محمداسرا ئیل ابن اخوند حفیظ الله ابن اخوند معظم شاه ابن ... د علما روز ګارسر خیل و ، دخپلې زمانې په مدرسانو عالمانو کې عظیم الشانه مرتبه یې لرله ... حضرت مولانا محمد اسرا ئیل په ۱۲۷۳ هـ ،ق کال په موضع طورو ... علاقه یو سفزایی (ضلع مردان ) کې په محله اخون خیل کې پیدا شوی و .مو ـ لانا محمد اسرا ئیل دوه ودو نه کړي وو . »

په میاشت کی ( د ۱۹۰۰میلادی کال د جنوری اوله ـ د ۱۳۱۷ هـ ، ق کال دروژی د میاشتی پـه دویمه نیټه) د ننگر هار د خو گیانـو داولسوالی په «کیناباد» نومی کلی کی زیږیدلی دی . (۱) لومړی یی په خپله کورنی کی له خپل پلارڅخه زده کړی وکړی . بیایی دسیمی له نورو جیدو علماو څخه هم د وخت مروج علوم زده کړل . د لاهور په «نعمانیه» اود تاکال په اسلا مـی کالج کی یی د عربی علومو امتحا ن

---

* یوه بی بی یی دموضع طوروپه قام باندی صدیق خیله یوسفز ایی وه . د هغی نه یو زوی محمد حسن الدین او دوه لوڼه تری شوی وی . دویمه بی بی یی په قام خو گیانی وه. هغی نه یی دری زامن شوی وو : محمد امین ، محمد انس ، محمد شریف چی پـه دوی کـی حضرت مولانا محمد امین خو گیانی نـامـه مشهور دی ... په ۱۲۹۵ هـ کی چی دانگریز انو په استعمار کی نورهم زیاتوالی راغی نود عالمانو یوه ډله دوادی پیښور نه د جهاد په غرض کابل ته په کډه لاړله .دپاره د دی چی حضرت قطب دوران محمدنجم الدین (هډی ملا صا حب) د بیرغ لاندی جهاد ونه وکړی . حضر ت مولانا محمد اسرا ئیل چی افغا ـ نستان ته په ۱۲۹۵ هـ کی په کـډه لاړنود حضرت هـډی صاحب سره د نږدی اوسیدلو په غرض یـی دننگر هار په خوگیانی نومی علا قه کی واده وکړ . هم هلته آباد شواوهم هلته په شپه د سه شنبی ماه جمادی الثانی ۱۳۳۴ هـ کی د یـو شپیته کالو په عمر کی شهید کړی شو ، مزار مبارك یی په علاقه خو گیانی کی دی ... »

وگوری : روحانی رابطه اورو حانی تړون ، عبدالحلیم اثر افغانی پیښـــور ، ۱۹۶۵ ع . (۱۰۰۸ ـ ۱۰۱۹ م ۰ م ۰

۱ـ گذار شات حیات ، (دمرحوم محمد امین خوگیانی قلمی یاد داـ شتونه)د هغه مرحوم د لور نجیبه جان په مننه .

په اوسنی لیکوال لومړی تـوک کی لیکل شوی دی : «ښاغلی محمد امین خان خوگیانی د مولا نا محمداسرا ئیل خان زوی په قام یـوـ سفزی چی په ۱۳۱۷ هـ ، ق کال دننگرهار دولایت د خوگیانوپه حکیم آباد کی زیږ یدیدلی .

د هغه د زیږ یدو د کلی نـوم «کناباد یا کیناباد» ذکر شوی دی.

ورکړی دی . صرف ، نحو ، منطق حکمت ، طب ، فقه ،اصول، تفسیر حدیث ، هیئت ، کلام ،ادب ،منا ظره ، عروض ، تجوید او نورو کی یی مطالعه وکړله او ویی لوستل .(۲) همدا رنګه یی دسیمی په ځینو نورو علمی اودینی مدرسو کی زده کړی وکړی . (۳)

هغه وخت چی په افغا نستان کی د غازی امان الله خان د واکمنی په پیل کی د افغا نستان اولس او خلکو د خپلو سر ښندنو په نتیجه کی او دوینو په بدله کی خپلـه ،خپلواکی بیرته تر لاسه کړه نوپه هیواد کی د نوی معارف د ترویج. خپریدو او پراخیدوله پاره هلـــی ځلی پیل شوی ، دهیواد له مرکزڅخه برسبیره د افغا نستان پـــه ولایاتو او لیری سیمو کی هم دی‌ارز ښتناکی چاری ته پاملرنه‌وشوه په‌دغه لړکی دننگر هار د خوگیانوپه‌کړه کی د لومړی ځل له‌پاره د «شجاعت» په نوم یو ښوو نځـــی‌تاسیس شو . د دی ښوونځی‌لو- مړنی سر ښوونکی همدغه محمـــــدامین خوگیانی وټاکل شو ، هغه‌چی په‌دی وخت‌کی‌یی د هیواددخپلواکی‌له پاره قلمی او عملی مبارزه کړی وه او لاکوله یی . (٤) د دی مکتب‌بنسټ همدغه نومو ړی کیښود او دوطن د کړیدلو او بی وزلو بچو دروزنی له پاره یی ملا وتړله. محمد امین خوگیانی د کړی د «شجاعت» په مکتب کی‌له ۱۲۹۹ څخه تـــر ۱۳.۳ هـ ، شس کال پوری دسر - ښوونکي په توگه وظیفه تر سره کوله . له ۱۳.۳ هـ ، شس څخه‌تر ۱۳.٤ شس (دمیزان تر ۱۵ نیټی )د ننگرهار ولا یت د پوهنی دمدیریت‌مرستیال و . دیو څه وخت‌له پاره‌د دغه مدیریت کفیل هم و . نوربیلابیل وظایف یی هم په دغه دوړرا - لنږ وو :

- د ۱۳۳.٥ شس کال د جوزا تر ۱۸ نیټی پوری د ننگرهـــار د مطبو عاتو معاون اود اتحاد مشرقی‌د جریدی ترجمان او بیا معاون .

---

۲- اوسنی لیکوال ، لومړی‌ټوک‌عبدا لروف بینوا . (۳٤۲ - ۳٤۳) م ، م .

۳- گذار شات حیات (قلمـــی یاد داشتونه ) .

٤- همدغه اثر .

ـ د ۱۳۰۸ شس کال د جدی ترمیاشتی پوری د اتحاد مشرقی مدیر اود ننگرهار د مطبوعاتو مدیر .

ـ په سقوی دوره کی هغه په کور ناست و او له اغتشاشاتو اړو دوړ څخه‌یی دهیوادد خلاصون له‌پاره د جرگو د جوړیدو اونورو لارو چارو په‌وسیله مبارزه کوله .(۱)

ـ په ۱۳۰۸ شس کال کی دکابل‌د «اصلاح» جریدی مدیر .

ـ په ۱۳۱۰ شس کال دانیس دجریدی مدیر وتاکل شو چی تر ۱۳۱۹ شس کال پوری یی همدغه‌ژور نالیستکه دنده په غاړه وه .

ـ له ۱۳۱۹ شس څخه تر ۱۳۲۵ هـ شس پوری د مطبوعاتو د مستقل ریاست مشاور و .

ـ له ۱۳۲۵ شس څخه د ۱۳۲٦ شس کال تر پای پوری د عدلیه وزارت معین و.

ـ د ۱۳۲۷ شس کال له پیل څخه‌د ۱۳۲۹ شس کال د میزان ترمیاشتی پوری د تمیز د عالی محکمی‌رئیس و .

ـ د ۱۳٤۹ هـ ، شس کال دمیزان تر ۲۲ نیټی پوری د مشرانو جرگی غړی او انتخابی سناتور و.په همدغه نیټه یی تقاعد وکړ اوبیا دژوند تر پای پوری په‌خپل‌کورکی و . د ژوند په وروستیوکلونو کی چی هغه ډیر سپین ږیری او بوډا و په خپل کور کی‌یی پسی ورځی تیرولی ، نو زیا تره‌وخت یی په مطالعه او لیکنه تیرولو په دغو وختونو کی یی زیاتره‌دخپل‌ژوند یاد داشتونه تنظیمول او لیکل .

محمد امین خو گیانی د ۱۳٦٤ شس کال د جدی په پنځمه نیټه د

---

۱ـ بحران و نجات ، محی‌الدین(انیس ) . کابل ، مطبعه انیس. (۲۵۲ـ ۲۵٤) م. م .

شپې نه بچې د(۸۶) کلو په عمرپه کابل کې وفات شو . (۱)
مرحوم محمد امین خو گیانی دخپل ژوند د ځوانی په دور ان لی د وطن د بچیانو په روز نه کــې زیاتې هلې ځلې وکړې او بیا یــې زور کالیزم او مطبو عاتو ته مخه کړه اوږده کلونه یې د بیلا بیلو جریدو او ورځپاڼو په خپرولو لی هڅـــې وکړې او د دې په څنگ کې یې یو شمیر آثار هم ولیکل او یایی لــه نورو ژبو راوړباړل .د هغه په آثارو کې دغه یې یادولی شو :
۱ــ حیات سید جمال الدیـــن(لومړی برخه ) په ۶۰ مخه کې په ۱۲۱۸ کال کې چاپ شوی دی . دادتتمة البیان د ژباړې لومړی بر خه ده .
۲ــ د سید جمال الدین افغان دتتمة البیان فی اته الا فغان ژباړه. سر ســزه او او ړنه دغـه اثــر یې له عربی څخه په فارسی ژباړلی اود دویمی برخی په نوم په (۱۱۰)مخونو کی په ۱۳۱۸ کال کی پــه کابل کی چاپ شوی دی .
۳ــ تدوین حیات سید علی تر مزی پیر بابایی بنیری . ددریمـی برخی په نوم په ۱۲۱۸ کال په کابل کی خپور شوی دی . (۲)
له اروا ښاد خو گیانی څخه ځینی ناچاپ آثار هم پاتی شوی دی ، لکه :
ــد قضا تاریخ .
ــ دپښتو نولی څروی. په پښتوژبه د هیواد د خپلواکی غوښتونکو په هکله .

---

۱ــ د مرحوم محمد امین خو گیانی د ژوند لیك په برخه کی له دغو منابعو استفاده شوی ده :
الف : گدار شات حیات .دمحمد امین خوگیانی قلمی اثر . د هغه د ژوند وروستنی یاد داشتونه .
ب : اوسنی لیکوال . لومړی ټوك داستاد بینوا تالیـــف . (۳۴۲ ــ ۳۴۳) م ، م .
ج ــ ژوندون مجله (دافغانستان د لیکوالو د اتحاد یی ارگان ) ، ۱۳۶۲ ش ، ٤ گڼه . د پښتـــی وروستی مخ.
د ــ د مرحوم خو گیانی دلـــور محترمی نجیبی ځینی یاد داشتونه.
۲ــ گذار شات حیات . (قلمــی یاد داشتونه . )

- د پښتونو لی ځلی . په‌پښتو ژبه‌لیکل شوی دی . (١)

استاد بینوا د محمد امین خو گیانی د آثارو په لړ کـی‌دسید‌جمال الدین افغان د تتمة البیان د فارسی‌ژباړی په څنګ کی د پښتو ژباړ ی یادونه هم کړی ده او لیکلی یــی‌دی چی یوازی فارسی تر جمه یــی چاپ شوی ده . (٢)

د یوی مجلی د یوی لیکنی لـه‌مخی محمد امین خو گیانی ده رو - ښانیان »په‌نوم یو نا چاپ اثر هم لری چی په خپل وخت‌کی یی‌دابن- سینا مطبو عاتی جایزه هم گټلی‌ده. په‌همدغه لیکنه کی د «تاریـــــخ اسلامیت» په نوم د هغه دیوبل نا-چاپ اثر یادونه هم شوی ده .(٣)

د مرحوم محمد امین خو گیانـی‌د ژوند وروستی اثر د هغه‌د ژوند پیښی او خاطر ات دی . دغه اثــر‌دهغه په‌بیلا بیلو یاد داشتو نو او د ژوند لیك او خاطرو په بیلا بیلو جلد ونو کی په جلا جلا نومو نویاد شوی دی. لکه : گذارشات حیات، خاطرات حیات و یاد داشت ها ی واقعات ، خاطر ات تلخ و شیریـن‌حیات ، سوانح حیات او نور .

دغه اثر په یو څه پراگنده ډول لیکل شوی او تدوین او تنظیم ته ضرورت لری .

د محمد امین خو گیانی له دغو آثارو څخه چی را تیر شو د هغه‌له لـه‌خوا یو زیات شمیر مقالی هم په‌متفرق ډول د هیواد په مطبو عاتو کی چاپ شوی دی . د دغو لیکنو او مقالو شمیر له (٦٠٠) څخه زیا - تیږی اوپه اتحاد مشرقی، اصلاح،انیس او ځینو نورو خپرونو کـی خپری شوی دی .

اروا ښاد محمد امین خوگیا نی دهیواد دیوه ژور ناليست او ور- ځپاڼه لیکونکی په عنوان هم د خپل‌ژوند ډیر کلونه او له هلو ځلو او

---

١- د «گذار شات حیات» قلمی‌اثر.

٢- اوسنی لیکول . لومړی ټوك(٣٤٣) م .

٣-د ژوندون مجلی همانمه یا ده‌شوی گڼه د پښتی خلورم مخ .

ولولو ډك کلونه د ور ځپاڼه لیکنی‌او جریده لیکنی او مطبو عاتو په لاره کی کار ته وقف کړی دی .هغه‌دافغا نستان د ژور نالیـــــزم او مطبو عاتو د تاریخ له مخکښوخپرو سر لارو او لومړنیو کسانو څخه شمیرل کیږی . اوس به د هغه دمطبو عاتی او ژور نالیستیك کارپه باب یو څه ووایو .

۱ــ د «اتحاد مشرقی» ژباړونکی،مرستیال او مدیر :

هغه وخت چی محمد امین خو گیانی د ننگرهار د معارف‌دمدیریت مرستیال او بیا کفیل و ، نـــــود«اتحاد مشرقی» له جر یدی سره‌یی همکاری پیل کړی وه . بیاد دی جریدی ترجمان او مرستیال شو . د ۱۳۰٤ شس کال له میزان څخه د۱۳۰۵ شس کال تر جوزا پوری‌هغه داتحاد مشرقی معاون اود ننگرهار د مطبو عاتو معاون و . په ۱۳۰۵ شس کال کی هغه داتحاد مشر قی‌د جریدی مدیر او سر محرروټاکل شو. دغی دندی یی‌د ۱۳۰۸ شس‌کال تر جدی پوری دوام وکړ . په دغو موده کی هغه د اتحاد مشر قی د جریدی خپرونو ته ډیره پاملرنــــه وکړ او د خپل وخت دامکاناتو او شرایطو په‌پام کی ساتلو سره یی وکولی شول چی په ننگر هار کی دمطبو عاتو او ژور نالیزم دغه ډیوه بله وساتی . لکه چی ښکاری،محمد امین خوگیانی د امانی دوری تر پای پوری د اتحاد مشرقی مدیر پاتـی شوی دی . (۱) همدا رنگه لکه‌چی خپله خوگیانی لیکی «له اغتشا ش‌وروسته څو گنی به هم هغه‌چلولی وی . (۲)

**۲ــ د «اصلاح» مدیریت :**

د «اصلاح» جریده د ۱۳۰۸ شس کال د عقرب په لومړی نیټه په‌کابل کی به خپرونو پیل کوی . د دی جریدی لومړی مدیر محمد حســـن سلیمی و . په څو گڼو کی‌یی معاون‌محمد زمان تره کی لیکل شوی او بیایی مدیر نومو ړی محمد امیـــن‌خو گیانی ټاکل کیږی . خو گیانی

---

۱ــ سیر ژور نالیزم در افغانستان . محمد کاظم آهنگـــــ، . (۱۱۷) م .

۲ــ گذار شات حیات (قلمی یادداشتونه) او اصلاح جریـــده ، ۱۵ گڼه ، ۱۳۰۸ شس ، ۳ دلو ، (۱)م.

داصلاح جریدی له ۱۳ گڼې څخه دمدیر په توگه په کار پیل کوی ۲۰ (۱۳۰۸ هـ ، شس دجدی ۲۶ ، د۱۳۴۸ هـ ، ق د شعبان المعظم ۱۶) په ۱۳ او ۱۴ گڼو کی یی خپل نوم داصلاح پر تندی نه دی لیکلی خوله ۱۵ گڼی څخه یی نوم د مدیر په عنوان د اصلاح پر تندی لیکل شوی دی . په ۱۳ گڼه کی چی محمدامین خوگیانی نوی د اصلاح مدیر ټاکل شوی دی ، نو د هغه د «اصلاح الا صلاح» یا «خط مشی جریده اصلاح» ترسر لیك لاندی دا سی لیکی :

«قارئین کرام الحمد الله مسبوق اند که جراید در ممالك مترقیه دارای کدام رتبه هستند و اهمیت شان تاچه اندازه هست؟ و دامنه منافع شان چه قدر وسعت دارد ؟ ووجود مطبوعات برای یك مملکت تا کدام حد ضروری است ؟ لیکن جراید ، باید جراید باشد ، اخبار باید اخبار باشد ، نه اینکه پول مشترکین واندوخته مسلمین به امور لا یعنی صرف شود. اوقات محررین، طابعین، ناشرین وقاریین بی سود ضایع گردد .

بالا خره اوراق جریده بدون اینکه در دکاکین نسوار فروشان و عطاران به بستن پری ها به کار آید ، بدردی نمی خورد .العیاذبالله اداره نمی خواهد چنین تدویر نماید . اداره خط مشی خود راابلاغ همیدارد تا قارئین کرام بدانند که استقبال جریده به این محور حرکت خواهد کرد اقا یانیکه شوق مقاله نویسی داشته باشند ، مطابق پرو غرام اداره مقالات را بفرستند مقالات غیر موافق به مسلك طبع نخواهد شد . زیراکه جریده تخته مشق شهرت پسندان و از نما - ینده گان مفکورات لاابالی نیست .اگر دعوی ادبیت را کرده نشرمقاله های خود را خواهش کند ، منظورمی‌شود ... » (۱)

خود «اصلاح»د جریدی په (۱۵) گڼه کی هغه خپل نوم د جریدی د مدیر په توگه لیکی او له لوستونکواود جریدی له علاقمندانو سره څپله پیژند گلوی کوی . په همدغه گڼه کی د «تعارف» ترسر لیك لاند ی یولړ خبری کوی چی ځینی یی دلته راوړو :

---

۱ـ اصلاح ، ۱۳۰۸ ، ۲۶ جدی شماره ۱۳ . ( ۱) م .

«بتاریخ ۱۷ جدی من بنده نا ـتوان محمد امین مدیر سابق جریده اتحاد مشرقی اداره اصلاح را از نظر خدمت بملت بعون الله به‌کف عاجزانه خود گرفته ام . در شماره ۱۳ و ۱٤ جریده اصلاح خود را با قارئین کرام این جریده معرفی نه‌نموده بودم . اینك در شماره حاضره خودرا معرفی می نماییم . ازحضور کافه مصلحین وطن آرزوی تعاون قلمی، فکری دارم، و امیدواثق دارم که ذوا تیکه درد ملی داشته باشند تحمل تکالیف امدادی رابر خود گوارا خواهند فرمود ، چه جریده برای جامعه خدمت‌میکند و جامعه ملیه افغا نستان یک جامعه مشترك است که برهر فردذی حس حقوق دارد ، بر ارباب ثروت حق امداد مالی و براصحاب علم و دکا حق تعاون فکری و قلمی دارد. امید واثق است که در این‌حالت تشنه کامی ملت از افا دات عمومی حضرات ذی القریحه بر جامعه احسان اشاعات مفکو رات صحیحه بتوسط جریده اصـــلاح خواهند فرمود . در خاتمه دعـای توفیق این خدمت بزر گ را که‌متعهد شده ام ، التجا دارم کـه دعای غائبانه بنابر خالی بودن از ظاهر داری قریب الا جابت دیده‌می شود ، الله تعالی برای توفیـــق خدمت ملت بر من فضل فرما یند ، امین یارب العلمیں ! محمد امین. »(۱)

په همدغه گڼه کی هغــه د «بشارت به قار ئین» ترسر لیک لاندی لیکی :

«وقتـ که بنده نشر جریده‌اصلاح را بعهده گرفتم ، دیدم باوجودکمی مطبو عات این جریده هم هفته یك مرتبه اشاعت میبابد و انتظار،مردم رابه نشر حوادث و وقایع بعد یك‌هفته زحمت می دهد ، لـهـذا از شماره (۱۳) اینطرف با وجـــودمشقت در هفته دو مرتبه اخبار را شایع نمودم وامید دارم آینده هم برین عزم موفق و کامیاب گـردم . انشاء الله تعالی . » (۲)

هغه وخت چی محمد امین خو گیانی د اصلاح مدیر دی‌نو له‌اونۍ څخه‌یو ځل خپریدل ی ی‌په او نی کی دوه ځل خپریدلو ته رسیږ ی

۱ـ اصلاح ، ۱۳.۸ ، ۳ دلو ،شماره ۱۵ . (۱) م .
۲ـ همدغه گڼه . (۱) م .

د دویم نشراتی کال په‌پیل کی‌یی‌قطع هم یو څه بدلون مومـــی او کوچنی کیږی . لکه‌د «سراج‌الاخبارافغانیه» او «امان افغان» جریدوپه څیرپی بڼه بدلیږی . په دریـــم نشراتی کال کی یی قطع بیر تـه غـــتیـــږ ی ا و لـــکه د پخوا په څیر کیږی . له محمد امین‌خوګیانی وروسته برهان الدین‌کشککی‌داصلاح دمدیر په توګه ګمـــارل کیږی او دهمده په وخت کی‌اصلاح په ورځپاڼه بدلیږی .

**۳ـ د «انیس» مدیریت :**

داصلاح جریدی له مدیریت څخه‌وروسته ،، محمد امین خوګیا نی د ۱۳۱۰ هـ شی کال د حوت په ۲٤ نیټه د انیس د ملی جریدی د سر محرر او مدیر په توګه ټاکــــل کیږی .

انیس د هیواد هغه ملی اوآزاده‌جریده وه چی د افغا نستان دپیا ـ وړی ژور نالیست، لیکوال اومبارزوغلام محی الدین انیس له خوا پـه آزاده او غیر رسمی توګه تاسیس‌شوله .

لومړنی مدیر یی خپله انیس وچی په امانی دوره کی یی خپرونو دوام وکړ . له اغتشا شی وروسته‌یی بیرته خپرونی پیل کړی څه‌موده وروسته یی مدیر او موسس‌په‌نری‌رنځ او بیا داستبداد په زندانونـو اخته شو او مدیر یی سرور جو یاوټاکل شو له سرور جویا وروسته دانیس د ملی جریدی دریم مدیـر محمد امین خوګیانی دی . کله چی خوګیانی انیس ته دمدیر اوچلوو نکی په عنوان راغی نود خپـــــل کار په لومړی ګڼه کی یی ولیکل :

«بنام نامی خدای بخشا ینـده ومهربان وستایشی مربی عالمیان و موجد زمین و زمان می نګاریم :

وظیفه جریده نګاری یك وظیفـه‌مهم است وبا ستثنا عواطف ملـی چیزی نیست که انسان رابه تحمیل‌مصایب طاقت فرســـای آن وادار ساخته بتواند . همین عواطف ملی‌بود که آقای محی الدین خان را به تاسیس این جریده ملی باعث شدو جریده انیس را انیس هـــر صاحب ذوق ګردانید ، آقای محی الدین خان تاوقتی به صرف افکـار ملت خواهانه خود در پیشبر فت‌این‌جریده ملی می پر داخت که صحت خدا داد خودرا باخت (خدا ونـــد صحت و اجرش دهد ) . آقـــا ی

جویا سینه مجروح خود را سپـــر مشکلات جریده نگاری ساختــه ، انیس را از سقوط نگهداشت .

حالا که وظایف تدویر این اداره ملی بدوش من افتاد ، باآنکه نمی توانم دعوی کنم که چه خدمت کرده ام و چه خواهم کرد ، بقار ئین عزیز این جریده مقدس ملی وانمود می سازم که آنچه توانستم در اتحاد مشرقی و اصلاح مشکلا ت موقوت طباعتی محیطی توانستم ، آنـــچه توانستم در خدمت جریده انیس دقیقه از صرف عواطف ملی فـــرو گذاشت نخواهم کرد .همه میدانند که وظیفه جریده است تا ملت را بیدار سازد . ایقاظ ملت بتوســـط جراید است ، ولی نه تنها مدیران جراید مسوول ایقا ظ اند، بـــلکه سایر مفکرین و تمام عقلا مسول اند تاعلما و عملا در ایقاظ جامعه خودصرف او قات فرمایند .. لهذاجر ـ یده انیس از کافه منورین وسایرمفکرین و تمام افاضل ملت افغا ن رجا دارد تا صحایف انیس را بـه اندراج تمنا تیکه میخواهند جا معه افغان باآن نایل شود ... امتیـــاز بخشند . انیس تمام آرزو هــای ارباب عرفان را بگوش عامه وسایرمشکلات مظلو مین را بگوش داد گران حکومت میخواهد برسانـــد .انیس میخواهد نامه های یتیما ن رابه مقتدران و فر یاد های غربارابه ثرو تمندان ومشکلات ضعفاوزیر دستان رابا قویا و بالا دســـتان وخوا هشات طلبه رابه مر بیـــان و نصایح دردمندان رابه عموم جا معه افغان خاطر نشان سازد ... » (۱)

لکه چه له دغی افتتاحیه او مقد ماتی وینا او سر مقالی څخه چی یی را څرګند یږی محمد امین خوګیانی تر ډیره ځایه او تر خپل وس پوری وکولی شول چی دانیس ملی ورځپانی او آزاد دریغ خوندی کړی . هغــه پری نه ښودل ، هغه څراغ مړ کړی چی محی الدین انیس د خپلو ګوتو په وینو بل کړی و او بیاسرورجویا په خپلو وینو بل ساتلی و . محمد امین خوګیانی یوه اوږده دوره یعنی له ۱۳۱۰ هـ ش څخه تر ۱۳۱۹ هـ ش کال پوری دانیس دملی جریدی مدیر پاتی شو .

انیس د افغا نستان د مطبو عاتو په تاریخ کی د یوه ځلیدو نکی مقام لرونکی جریده او ور ځپانه ده دی جریدی دخپلو خلکو اود پرګنو

---

۱ـ انیس ، ۱۳۱۰ هـ ش ، ۲٤ حوت ، دوشنبه ، (۱) م .

د هیلو د څرګند ویه خپروني پـه توګه په نشر اتوپيل وکړ او دغـه موقف یی تر یوحده د محمد امیـن خوګیاڼی دمدیریت په دوران کی هم خوندی وساته .

٤ـ دانیس د خپروني له مد یریته وروسته ، محمد امین خو ـ ګیاڼی د مطبو عاتو د مستقل ریاست دمشاور په توګه وټاکل شو . دغی دندی یی له ۱۳۱۹ شس څخه تـــر ۱۳۲۵ هـ شس کال پوری دوام وکړ . سره له دی چی په دی وخت کی هغه عملا دکوم ژور نالستیک کار په جر ـ یان کی نه وخو بیایی هم د مطبوعاتی او ژور نالستیکو کار ونو په لړ کی دغه د مطبو عاتو دریاست دمشاو ریت د دوری یادو نه هم کیدلـــی شی .

اروا ښاد محمد امین خوګیاڼـی ښه عالم ، لیکوال او په خپل وخت کی یو نامتو ور ځپاڼه لیکونکـی او جریده لیکونکی و ، هغه که خپل ټول ژوند د مطبو عاتو او ژور نالیزم په لاره کی کار او زیار ته وقف نه کړ نو بی له شکه چی د ژوند ډیر لـه ثمره ډك کلونه ، دکار او زیار تاوده کلونه یی د ژور نالیزم ، ورځپا ڼه لیکنی او مطبو عاتو په لاره کی هڅو ته ځانګړی او وقف کړل .

